





په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسیس کال: ۱۳۰۰ لمریز، سه شنبه ۵/صفر المظفر/ ۱۴۴۵ هـ ق، ۳۱/زمري/ ۱۴۰۲ل کال - ګڼه (۳۵)

Tuesday-22-August-2023 Issue 35





# د اقتصادي کمېسيون په نوبتي غونډه کي پر مهمو موضوعاتو بحث او پرېکړي وسوې

د رياســـت الــوزرا د اقتصــادي مرســـتيال مــلا عبدالغني بـرادر آخند پـه مشرۍ، د اقتصـادي کمېسيون نوبتي غونـډه پـه مرمرينـه ماڼۍ کي وسوله.

پـه غونـډه کــي د افغانســتان د ملــي پراختيــا ستراتيژۍ پر جوړولو تر هر اړخيز بحث وروسته پرېکـړه وسـوه، چـي د رياسـت الـوزرا اقتصـادي معاونيــت پــه مشــرۍ او اقتصـــاد وزارت پـــه سـکرتريت دي د اقتصـادي کمېسـيون لـه غـړو وزارتونو او ادارو څخه يوه ګډه کمېټـه جوړه او د ټولو دولتي ادارو کړنلارو او پلانونو ته په کتو سره دي د يـادي سـتراتيژۍ مسـوده وروسـتۍ او د منظـورۍ لـه پـاره دې اقتصـادي کمېسـيون تـه وړاندي کړي.

داقتصـادي کمېسـيون پـه ناسـته کـي د رياست الوزرا اقتصادي معاونيت استازي په ګډون د اوبو او انرژۍ وزارت په مشرۍ د کرهني، اوبو لګولو او مالـدارۍ، کـانونو او پټـروليم او مـاليې وزارتونو څخه ګډي جوړي سوي کمېټې ته د نده وسپارل سوه، څو د کجکي بند اړوند د استملاک سوو مځکو د چارو عملي کېدو، د پاته مځکو استملاک او د بند په کاسه کي د رسوباتو د پاکولو د امکاناتو ارزوني په موخه دي سيمي ته سفر وکړي او خپل راپور دي اقتصادي کمېسيون ته وړاندي کړي.

د افغانستان بانک په مشرۍ د ماليې او کانونو او پټروليم وزارتونو څخه ګډي جوړي سوي کمېټې ته دنده وسپارل سوه، څو د زرګرانو اتحـــاديې ۳مخ

# له انګرېزانو د خپلواکۍ د بېرته اخيستلو د ۱۰۴ مي کاليزي په مناسبت غونډه وسوله

يـاده غونـډه چـي د شـنبې پـه ورځ د کنـدهار پـه اطلاعات او فرهنګ رياست کي جوړه سوې وه، د ياد رياست د رئيس مولوي انعام الله سمنګاني تر څنـګ، د ابـراهيم النخعـي د تخصصـاتو اسـتاد شيخ الحديث مفتي سيداحمد صابر، د دارالعلوم حقانيې استاد شيخ الحـديث مولـوي احمـد ابو خالد، استاد حيات الله رفيقي، استاد نور احمـد قرآن مل، ډېرو علمـاء کرامـو، قـومي مشـرانو او عامو خلکو ګډون کړی وو.

د کندهار د اطلاعات او فرهنګ رئيس د غونډې ټولـو ګـډونوالو تـه د ښـه راغلاسـت تر څنـګ، د انګرېزانو څخه د ۱۰۴ مي کاليزي پـه مناسـبت مبارکي وويله او زياته يې کړه، افغانانو د الله (ج) په فضل په تېره څه باندي يوه پېړۍ کي درې لـويي خپلـواکۍ ترلاسـه کـړې او د نـړۍ زبـر ځواکونو ته يې ماته ورکړې ده، چې پـه معاصر تاريخ کي بې ساري ده.

د مولوي انعام الله سمنګاني په خبره، يوستر ۳مخ

# د شل کلن جهاد د بريا د دوهمي کاليزي په مناسبت مشاعره جوړه سوه

د کندهار پـه اطلاعـات او فرهنـګ رياست کي د امريکايي اشغال پـه وړاندي د شل کلن جهاد د بريا د دوهمــي کــاليزي پــه مناســبت شانداره مشاعره تر سره سوله.

ياده مشاعره د پنجشنبې په ورځ د کنـدهار پـه اطلاعـات او فرهنـګ رياست کي جوړه سوې وه، چي پر مهــال يــې د يــاد رياســت رئــيس مولوي انعام الله سمنګاني، مولوي محمـد جـلات مزمـل، اسـتاد نـور احمـد قـرآن مـل، حـاجي مسـعود فـــروتن، حـــافظ لعـــل محمـــد معصـومي، نـورو شـاعرانو او تـرنم ويونکــو، امــارتي مســئولينو، د پوهنتونونو استادانو او سوونو ۳مخ

# د کندهار پوهنتون د دوو پوهنځيو څخه ۲۱۶ تنه فارغ سول

د کنـــدهار پوهنتـــون د اقتصـــاد او ژورناليزم پوهنځيو څخه ۲۱۶ تنه محصلان تر څلور کلنو لوړو زده کړو وروسـته د دوشـنبې پـه ورځ فـارغ سول.

د اقتصاد پـوهنځي رئيس پوهنيـار عبدالله زيارمل وويل، اقتصادي وده او پراختيا د هيوادونو په پرمختـګ کـي د ښـې حکومتـولۍ يـو اساسـي مفهوم او يـو لـه اړينـو عواملو څخـه ده.

د کندهار پوهنتـون رئـيس مولـوي اکرم شاه عاصم وويل، د افغانستان اسلامي امارت ټول مسئولين شپه او ورځ پـر دې کـار کـوي، چـي د اقتصــاد پــه ډګــر کــي ســوداګرو او صـــنعت کـــارانو تـــه اســـانتياوي رامنځته کړي. ۳مخ

# امنيه قوماندان سپين بولدک ولسوالۍ ته ولاړی

د کنـــدهار ولايـــت امنيـــه قومانـــدان سپين بولدک ولسوالۍ تـه د امنيتـي وضعيت د ارزوني په هدف ولاړی.

د امنيې قوماندانۍ وياند حافظ صابر بـاختر خبـري آژانـس تـه ويلـي، د کندهار ولايت امنيه قوماندان مولوي سـميع الله حـزب الله سـپين بولـدک ولسوالۍ ته ولاړی او هلته يې د چيک پواينټونو او سرحدي صفري نقطې څخه ليدنه وکړه.

د کندهار امنيه قوماندان ويلي، زمـوږ هـدف ولـس تـه د ډاډمـن امنيـت راوستل دي او په خپل دې هدف کي پوره کامياب يو، امنيتي ځواکونـه بـه چا تـه اجـازه ورنـه کـړي، چـي زمـوږ هيوادوالو ته ستونزي پيدا کړي.

# په کندهار کي امنيتي ځواکونو تېزاب او اهاک نيولي دي

پـه کنـدهار کــي د ۱۸ ډبـو تېزابـو تر څنـــګ، ۸۰ پارســـله نشـــادر او اهاک نيول سوي دي.

د کنـــــدهار ولايـــــت د امنيـــــې قومانـدانۍ ويانـد حـافظ صـابر د دوشـــنبې پـــه ورځ بـــاختر خبـــري آژانس ته ويلي، د امنيتي ځواکونو له خـوا پـه هـرات اډه کـي ۱۸ ډبـې تېزاب، ۸۰ پارسله نشادر او اهـاک ونيول سول، چي په تړاو يې يو تن لـه سـيمي تښـتېدلی او د امنيتــي ځواکونو له خوا تـر تعقيـب لانـدي دئ.

د يــادوني وړ ده، چـــي د امنيتـــي ځواکونـو د هڅـو پـه نتيجـه کـي امنيتي حالت ښه سوی دئ.

# د کندهار پوهنتون د شرعياتو پوهنځي څخه ۸۳ تنه فارغ سول

په همدې موخه د يکشنبې په ورځ د پوهنتون د غونډو په تالار کي مراسم نيول سوي وو.

د کنـــدهار پوهنتـــون د شـــرعياتو پـوهنځي رئـــيس مولـوي حـزب الله کندهاري وويـل، پـه ټولنـه او علمـي مرکزونو کـي د پوهنتـون او مدرسـې ترمنځ فاصله له منځه تللې، زموږ د مدرســې او پوهنتـــون محصـــلانو هدف او تګلاره يوه سوې ده.

د کندهار پوهنتـون رئـيس مولـوي اکــرم شــاه عاصــم لــه ځوانــانو وغوښتل، چي ټول په ګډه د نظام، هيـواد او ټـولني پرمختـګ تـه مـلا وتـړي او ټـول بـه يـو او بـل تـه د ورورولۍ لاس ونه سره ورکړو.

# د استادۍ له پاره له زرونو کسانو آزموينه واخيسته سوه

په کندهار کي د خصوصي مدرسـو د اسـتادۍ لـه پـاره لـه زرونـو علمـاوو، حافظـانو او قاريـانو څخـه آزموينـه واخيسته سوله.

د عاليقدر امير المؤمنين شيخ صاحب حفظـه الله پـه ځـانګړې پېرزوينـه د هيــواد پــه کچــه، خصوصـــي دينـــي مدرسو ته سل زره د استادۍ بستونه ورکول سوي، چي په لومړي پړاو کي په کندهار ښار او ولسواليو کـي ۴۰۰ دينـــي مدرســـو تـــه ۲۰۰۰ زره ســـهم ورکول سوی او د مقررۍ آزموينه يې د يکشنبې په ورځ واخيستل سوله.

د کنــدهار د پــوهني رئــيس مولــوي فخرالـــدين نقشـــبندي ويلـــي، د يـــادو بستونو له پاره يې د ښار او ولسواليو د خصوصـــي دينـــي مدرســـو د برحالـــه زرونو استادانو، چي ديني عالمان، حافظان او قاريان په کښې شامل دي، آزموينه واخيستله، چي له جملې بـه يې ۲۰۰۰ بريـالي کسـان ټاکـل سـوو بستونو ته لار پيدا کړي.

# د پوليو ناروغۍ ضد واکسين درېيم ورځنی کمپاين پيل سو

د کنـدهار د عـامي روغتيـا رياسـت مرستيال ډاکټر سيداحمد شـاداب د پوليـو ضـد واکسـين د کمپـاين پرانســـتني پرمهــال وويــل، د دې کمپــاين پــه لــړ کــي بــه د ښــار او ولسواليو ۶۳۰ زره تـر پنځـه کلنـۍ کم عمره کوچنيان واکسـين سـي.

د شاداب په وينا، په تېر کمپاين کي ۵۲۰ زره کوچنيان واکسـين سـول او اوس تـر بـل هـر وخـت والـدينو د پوليو په وړاندي د واکسين کمپاين له ډېرو سره همکـاري کـوي او د دې واکسين پـه ارزښـت پوهـول سـوي دي.

# د خپلواکۍ د ۱۰۴ مي کاليزي په مناسبت د کرکيټ سيالي وسوه

د کندهار کرکيټ آمريت له لوري لـه انګرېزانو څخه د هيواد د خپلواکۍ د بېرته اخيسـتلو د ۱۰۴ مـي کـاليزي پـه مناسـبت، د کرکيـټ سـيالي تـر سره کړله.

د کندهار کرکيټ آمر حـافظ جميـل منصور باختر خبري آژانس ته ويلي، د هيواد د خپلواکۍ د ۱۰۴ مي کاليزي په مناسبت يې د دوو لوبډلو کنـدهار اتـلان او ميونـد اتلانـو لوبـډلو تـرمنځ، سيالي پر لاره اچولې وه، چي د کندهار اتلانو په بريا پای ته ورسېدله. ۳مخ

# د خپلواکۍ ۱۰۴ کاليزه دي ټول اتل ولس ته مبارکه وي

نعمت الله "شاکر"

خپلواکي او استقلال د انسانانو فطري حق او فطري غوښتنه ده.

د اسلام مبارک دين په داسي حال کي انسانانو ته راولېږل سو، چي په مځکه کي خلکو ټولني او افراد يرغمل کړي وو. انسانانو او ټولنو د مرييتوب ژوند تېراوه، اسلام د انسانانو د استقلال او خپلواکۍ له پاره خورا مهمي طريقې او اسلوبونه ذکر کړي دي، چـي يـوه طريقـه او اسـلوب يـې د کفـاراتو پـه جبران کي لومړی افشن د مرييانو آزادول دي، تر څو انسان مسـتقل و اوسـي او د خپـل ژونـد او فعـاليتونو اړونـد خپلـه تصميم ونيسي.

د دعوت، تبليغ، تعليم او جهاد ستراتيژي او پاليسـي هـم د انسانانو د استقلال او خپلواکۍ مهمي طريقې دي.

د اسلام دښمنان او د هغوی فکري ملګري تـل هڅـه کـوي، چي انسانان يې غلامان وي، تر څو هغه انسانان او د هغـوی مادي او معنوي شتمنۍ او معدنونه يې وزبېښي.

افغانان تر نورو ملتونو زيات د استقلال او خپلواکۍ سره مينه لري او تل يې هڅه کړې ده، چي يرغلګر وځپي او خپل هيواد او خاوره له اشغاله پاکه کړي. د همدغه پاک هدف د حصول له پاره يې خپل ځانونه او هر څه قربان کړي او دغه هدف يې ترلاسه کړی دئ.

پـه تېـرو سـلو کلونـو کـي يـې درو سـترو امپراتوريـو تـه ماتـه ورکړې او يرغلګر يې له خپله پاکه هيواده په تور مـخ شـړلي دي.

د دغو برياوو څخه لومړۍ بريا د غربي ښکېلاک په وړاندي د افغان غيور ولس د بې ساري مبارزې په نتيجه کي انګليسي پـوځ ماتــه وخوړلــه، ځينــو ســرونه او ځينــو پښــې دلتــه پرېښوولې، نورو پښې سپکي کړلې او وتښتېدل.

د اسد مياشتي (۲۸) نېټه دي ټول اتل ولس ته مبارکه وي.

د داسي باثباته، پر مختللي او سمسور افغانستان په هيلـه، چي يو تبعه يې هم له هيواده بهر ميشت نه وي.

# د خپلواکۍ ورځي لمانځل؛ نوي نسل ته کوم درسونه لري؟

بريالی فيضي

افغانان د ټولي نړۍ پر مخ هغه غيور ملت دئ، چي په تېرو سلو کلونو کي يې د وخت دروز بر ځواکو او مغرورو اشغالګرو ته ماتي ورکړي دي، هغوی يې له خپلي پاکي خاوري شړلي دي.

افغانانو په دې سره نړۍ والو ته دا څرګنده کړې ده، چي په هيڅ صورت به د مغرور او زورور سلطې ته تسليم نـه سي او هيڅکله به پر خپله خاوره د پرديو اشغال و نه مني.

موږ ۱۰۴ کاله وړاندي انګرېزان مات کړل، تقريبًا ۳۱ کالـه وړاندي مو د شوروي ځواکونه له افغانستانه وتلو ته اړ کړل او دوه کاله مخکي مو د امريکا په مشرۍ د ناټو ټلوالي ځواکونه له خپلي پاکي خاوري و ايستل.

افغانستان د پورته ترلاسه کړو آزاديو ورځي هر کال لمانځي، دا ورځي ځکه بايد ولمانځل سي، چي د افغانانو هر نسل په دې پوه سي او دا درس واخلي، چي هيڅکله به د وخت د زبر ځواک ظلم ته نه تسليمېږي او همېشه به د خپلـي خـاوري استقلاليت ساتي.

زموږ هر کوچنی بايد په دې پوه سي، چي سل کاله وړاندي زموږ نيکه ګانو د وخت تر ټولـو سـتري امپراتـوري مـاتولای سوای، نـن ورځ مـوږ هـم کـولای سـو، چـي د وخـت د سـترو يرغلګرو په وړاندي د خپلي خاوري څخه دفاع وکړو.



## د طلوع افغان خبري

# په کندهار کې صنعت ورځ تر بلې د غوړېدو په حال کې دئ

د کندهار ولایت په صنعتي پارک کې په تېرو کلونو کې ۱۵۰ صنعتي فابریکې فعالې وې، چې د افغانستان د اسلامي امارت په بیا واکمنېدو سره ۳۰ نورو فابریکو هم په فعالیت پیل کړی دئ.

په دې سره په دغه صنعتي پارک کې د فابریکو شمېر ۱۸۰ ته پورته سوی، چې شاوخوا ۴۵۰۰ کسانو ته په کښې په مستقیم ډول کاري زمینه برابره سوې ده.

د نوو فعاله سوو فابریکو له ډلې د سنو فارما د دوا جوړولو لویې فابریکې یادونه کولای سو، چې د هیواد په کچه یې فعالیت پیل کړی دئ او همدارنګه د دې سره په څنګ کې د سمینټو او ټوکر جوړولو فابریکو ساختماني چاري هم رواني دي، چې د هیواد په کچه به لویي فابریکې وي.

په کندهار کې د صنعت د ودي له پاره یو ډېر ښه چاپېریال برابر سوی، خصوصًا د برېښنا یادونه کولای سو، چې په تېرو وختونو کې د دې مهمي چاري غم هیڅ حکومت و نه خوړئ، خو د اسلامي امارت په حاکمېدو سره دغه ستونزه تر ډېره حده حل سوې او فابریکو ته د ضرورت وړ برېښنا برابره سوې ده.

یوه بله لاسته راوړنه د امنیت ده، چې اسلامي امارت یې ویاړ له ځان سره لري، د امنیت ښه والی د دې لامل سوی، چې پانګه وال په اطمینان سره خپله پانګه په خپل هیواد کې مصرف کړي.

د افغانستان اسلامي امارت د اقتصادي کمېسیون مسئولین هم په پوره انرژۍ داهڅه کوي، چې په هیواد کې د صنعت د ودي له پاره شرایط مساعد کړي، په دې لاره کې یې یو د پام وړ اقدام دادی، چې د هغو صنعتي توکو پر واردولو یې بندیز لګولی، چې په کور دننه کې یې اړتیا پوره وي. دا چاره به له صنعتکارانو سره د بازار موندني په برخه کې ډېره مرسته وکړي.

دا چې د صنعت د ودي له پاره د افغانستان اسلامي امارت خپل مسئولیت ادا کړی، شرایط یې مساعد کړي، اوس د پانګه والو مسئولیت ګرځي، چې خپلې شتمنۍ په خپل هیواد کې دننه مصرف کړي، د بهرنیو هیوادونو پر ځای دي په خپل هیواد کې پانګونه وکړي، تر څو ګټه یې خپلو غریبو هیوادوالو ته هم رسېدلې وي.

# معاصر غرب؛ له مسلمانانو څه غواړي!؟

محمد ریحان "محمدي"

د عثماني خلافت تر ړنګېدو وروسته چې کله د مسلمانانو واکمني چې تقریبًا د نړۍ پر ټولو اسلامي هیوادونو یې حاکمیت درلودی، ختمه سوه او غرب خصوصًا اروپا او متحدینو یې دوړو لېوانو په څېر، د اسلامي نړۍ هیوادونو ته مخه کړه، د اشغال سیوری یې پر وغوړاوه او د معاصر فرعونیت اساس یې کېښېناوه، له هماغه وخته غرب او غربیانو د اسلامي نړۍ د هیوادونو او په خاص ډول د مسلمانانو په کمزوري کولو او له پښو غورځولو پسي متې راونغښتل او په دې لار کې یې له هیڅ ډول حربې کارولو څخه لاس وا نه خیستی.

معاصر غرب چې تر شا یې د یهودیت او نصرانیت ناوړه تنظیمونه قرار لري، د شلمي پېړۍ له اوایلو د خپلو ځینو خاصو هدفونو په لرلو سره په اسلامي هیوادونو کې د مختلفو لارو څخه ډېر شمېر پلانونه پر لار اچولي، چې متأسفانه ځیني کمزوري مسلمانان یې هم د پلان برخه جوړ سوي او غرب ته یې د هغوی و هدفو ته د رسولو په لار کې اوږه ورکړې ده.

د نړۍ په اسلامي هیوادونو کې داسې کمزوري، پردي سوي او د فکري جګړې ښکار سوي مسلمانان وو، چې په حکومتولۍ، اقتصاد، جامعه او ټولنه، تعلیم او داسي نورو کي د غرب د خودساخته نظامونو د پلي کېدو هوډ یې درلودی، په ځینو اسلامي هیوادونو کي وینو، چې د یادو سوو مجالونو څخه په یوه نه یو مجال کي یا خو د غرب تقلید سوی او یا هو بهو هماغه د غرب جوړ سوی نظام راکاپي سوی او په خپلو اسلامي هیوادونو کي یې په خپل - خپل مجال (توان) کي پیسټ کړی چې دا د غرب د هغو پلانونو مثبته پایله ده، کوم چې غرب نور هم خپلو هدفونو ته نژدې کوي.

دا چې د معاصر غرب هدفونه څه دي او له مسلمانانو څه غواړي؟ په لنډ ډول یې ذکر کوو:

۱ - بې دیني یا اقلاً په دیني او مذهبي چارو کي د مسلمانانو کمزوري کول:

معاصر غرب هڅه کوي، څو مسلمانان له خپله دینه و باسي او یا دا چې پر خپل دین یې پر پردي، خو داسي چې دژوندانه ټولي کړني یې د دین پر اصولو بناء نه وي، چې دې هدف ته د رسېدلو له پاره یې د اسلامي نړۍ په هیوادونو کي د مؤسسو، راډیو - ټلوېزیونونو، اخبارونو، مجلو، مخورو کسانو، سیاسیونو، فعالانو، ټولنیزو شبکو، انټرنیټي سایټونو، تعلیمي ډګرونو او داسي نور له لاري بې شمېره تبلیغاتي وسایل او دستګاوي په کار ګمارلي دي.

له دې چاري څخه د معاصر غرب هدف دادی، تر څو مسلمانان له خپل دین څخه د لیري والي په صورت کي غربي ادیانو او مذهبونو ته مخه کړي، د مسلمانانو په زړونو کي د اسلام یو داسي ضعیف تصور پیدا کړي چې دین یوازي او یوازي د عبادت، مسجد او مدرسې نوم دئ او د ژوند په نورو چارو کي د دین دخل ته اصلاً اړتیا نه پیدا کېږي. د دې له پاره چي د غرب دا چاره لا نوره ترقي هم وکړي، د اسلامي نړۍ په مختلفو اسلامي هیوادونو کي مسلمانانو ته ښکلي او ښایسته مسجدونه جوړوي، مخروبه سوي لاري یې سموي، داو بوا و نورو وسایلو تنظیم او انسجام یې په ښه ډول تر سره کوي، یوازی او یوازي د دې له پاره چي مسلمانان خپلي عبادتي چاري په کښي تر سره کړي او اسلام فقط تر مسجد پوري منحصر کړل سي او مسلمانانو ته د امریکایي او غربي اسلام داسي ناقص ذهنیت ورکړي، چي له معاملو، سیاست، اقتصاد، کورني او ټولنیز نظامونو، جهاد، له کفارو سره تعاملات، ولاء او براء او ګڼ شمېر نور د اسلام هغه لوی مسایل چي غرب یې د خپلو ګټو په تاوان باندي ویني، بېخي له لویه سره په کښي وجود و نه لري او له دې لاري د مسلمانانو په زړونو کي د کفارو له پاره هغه کرکه چي د عقیدې پر اصولو پایداره وي، له منځه یوسي، د جهاد، ولاء او براء او نور له کفارو سره تړلي د یو مسلمان عقیدوي مسایل د صحابه وو رضوان الله علیهم اجمعین د دور مسایل وګڼلای سي.

۲ - له غرب او غربي هیوادونو سره مینه:

غرب هڅه کوي، تر څو د مسلمانانو په زړونو کي د غرب داسي محبوبیت پیدا کړي، چي آن له خپلي خاوري او مقدساتو هم ور ته محبوب وي، په عقلونو او فکرونو کي یې تل د غرب ښکلا انځور وي، غربیان ورته د ټولي نړۍ متمدن، بااخلاقه، او باسلیقه قوم وي، یو داسي قوم چي بشریت ته ژمن او د ټولو بشري اړتیاوو او حقونو پوره کوونکی وي.

د دې چاري په ترسره کولو سره غرب د مسلمانانو زړونه خپل فکر، عقیدې، اخلاقو، فرهنګ او د خپلو هیوادونو لوري ته مایلوي او له دې لاري بې شمېره مذهبي، سیاسي، اقتصادي، فرهنګي او داسي نوري ګټي لاسته راوړي، چي متأسفانه په دې پلان کي هم غرب خپلو موخو ته نژدې سوی دئ.

هره ورځ د اسلامي نړۍ له هیوادونو څخه ځوانان وینو چي په مرګونو لارو د غرب غېږي ته د رسېدو هڅه کوي او خپله خاوره او اسلامي مقدسات تر شا پر پردي.

۳ - له تعلیم او معاصري ټکنالوژۍ څخه محرومول:

د معاصر غرب بله هڅه او پلان دادی چي مسلمانان له معاصري ټکنالوژۍ او تعلیمي ترقۍ څخه د تل له پاره بې برخي وي. که څه هم د اسلامي نړۍ په ځینو هیوادونو کي د تعلیمي ترقۍ او پرمختګ څه نمایشي کارونه تر سره کوي، خو واقعیت دادی چي غرب داسي تعلیمي نظامونه د اسلامي نړۍ په هیوادونو کي هیڅکله نه غواړي چي مسلمانان د تعلیم په مټ، معاصري ټکنالوژۍ ته ځانونه ورسوي.

هغه اسلامي هیوادونه چي د اشغال تر مستقیم او غیر مستقیم اغېز لاندي وي، د دې چاري حقیقت ښه ځني څرګندېږي. موږ وینو چي د غربي اشغال تر سلطې لاندي اسلامي هیوادونه د تعلیم د تر ټولو وروسته پاته حالت سره مخ دي. په تعلیمي توان کي پر ځان د بسیاینې جوګه نه دي او هغه پرمختګونه چي د تعلیم په مټ ورته په معاصر وخت کي لاسرسی کېږي، ور څخه محروم دي. د اشغال تر چتر لاندي په ځینو اسلامي هیوادونو کي وینو چي لک یې آن په لویو ښارونو کي د کتاب، معلم او نورو تعلیمي اسانتیاوو څخه بې برخي دي.

معاصر غرب غواړي له دې لاري څخه هم مسلمانان تل د ژوندانه اسانتیاوو ته د لاسرسي په موخه دوی ته محتاج وي. تداوي او د تداوۍ وسایل، زراعت او د زراعت وسایل، ماشینري، رغونه او د رغوني وسایل او بې شمېره نور وسایل، آلات، تخنیکي او تعلیمي مغزونه او ذهنونه او داسي نور له غرب څخه تر لاسه او خپلو هیوادونو ته یې د هغوی له معنویاتو سره وارد کړي.

۴ - په غربي رنګ د مسلمانانو رنګول:

د غرب بل خطرناک پلان او هڅه داده چي مسلمانان د ژوند په ټولو معنوي اړخونو، لکه: اخلاق، فرهنګ، عنعنات او داسي نورو کي د غرب تقلید وکړي، د غرب هغه ناوړه اخلاق چي معاصر غرب یې د ګړنګ تر غاړي رسولی، په مسلمانانو کي رایج کړي او په بدل کي یې د مسلمانانو څخه د هغوی بې بېلګي اخلاقي مواصفات، لکه: حیا، عفت، شجاعت، مېړانه، تقوا، اخلاص، رښتینولي، عدالت او داسي نور واخلي او په پایله کي د حقیقي مؤمن مسلمان پر ځای، د غرب په رنګ رنګېدلی یو غربي مسلمان په وجود راسي. همدارنګه معاصر غرب هڅه کوي، څو خپل ناوړه فرهنګ، عادتونه او رواجونه په مسلمانانو کي رایج کړي، له مسلمانانو څخه د هغوی دیني او کلتوري عنعنات سلب کړي او په بدل کي یې غربي سټایلونه، غربي خوراکونه، غربي جامې او د غرب نور فرهنګونه او داسي نور ورته د ډالۍ په توګه ورکړي.

# د یهودانو دسیسې

لیکوال: محمد یحیی خان
ژباړه: سمیع الله "دراني"

څلورمه برخه

د فلسطین فتحه: کله چي د سزا څلوېښت کاله پوره سول، نو دادوم د سرحد سره نژدې د "هور" په غره کي حضرت هارون (ع) وفات سو، بیا حضرت موسی (ع) بني اسرائیل روان کړل، د موآب په سیمه ننوتل، هغه سیمه یې فتحه کړه، تر دې وروسته حسون او ثطیم نومي سیمي ته ورسېدل. دلته بیا د عباریم پر غره حضرت موسی (ع) وفات سو. تر دې وروسته حضرت یوشع (ع) د بني اسرائیلو اول خلیفه سو، یوشع (ع) بني اسرائیل روان کړل، د "اردن" دریاب یې پای کړ او "اریحا" نومې سیمه یې فتحه کړله. د فلسطین اول ښار و، چي د بني اسرائیلو په قبضه کي راغلی، چي بیا په لږ وخت کي ټول فلسطین فتحه سو. د دې فتحي څخه مخکي بني اسرائیل هم په فتنو کي مبتلاء ول، تر فتحي وروسته یې نوري نافرمانۍ هم شروع کړې، چي الله (ج) د هغو په بدله کي سختي سزاوي ورکړې.

د حضرت موسی (ع) تنبیه:

د موسی (ع) تر وفات څو ورځي مخکي بني اسرائیلو ته یې یو وصیت وکړ، چي د قرآن المجید د سورة ابراهیم په ۷ نمبر آیت کي یې داسي ذکر راغلی دئ: ژباړه: په یاد ولرئ، ستاسو رب تاسو خبر کړاست، که چیري تاسو شکر وکاږئ، نو زه به نور انعامونه هم درباندي وکړم، که مو ناشکري وکړله، بیا نو زما سزا سخته ده."

د دې وصیت په باره کي د بایبل په کتاب استثنا کي ډېر په تفصیل سره ذکر راغلی دئ، چي په هغه وصیت کي موسی (ع) بني اسرائیلو ته خپل تاریخ ټول ور په یاد کړ او د تورات هغه حکمونه یې دوهم وار ټول ور ته ذکر کړل، کوم چي الله (ج) پر بني اسرائیلو د موسی (ع) په واسطه نازله کړي وو.

د دې تقریر ځیني خبري ډېري عبرتناکي دي، د بېلګي په توګه: که چیري تاسو د خدای (ج) دین ومنئ او په زړه سره مو تصدیق وکړ، نو الله (ج) به تاسو د ټولي دنیا پر قومونو سرلوړي کړي او که چیري مو د خدای (ج) دین و نه منئ، د هغه احکامات مو و نه منل، بیا به پر تاسو لعنتونه وي، په ښار او کروندو کي به لعنتیان یاست، و با به پر تاسو راسي، آسمان به د ګیلټو (یو ډول فلزي مواد) څخه جوړ سي او مځکه به داوسپیني څخه وګرځي، الله (ج) به مو د خپلو دښمنانو مخ ته کمزوري کړي او کرار - کرار به شکست درکړي. له ښځي سره به کوزده تاسو وکړئ، خو جماع به بل یو ور سره وکړي، کور به تاسو جوړ کړئ، خو بل یو به په کښې اوسېږي، وني به تاسو کښېږدئ، خو مېوه به یې بل یو خوري، ستاسو غویان به ستاسو مخ ته حلال سي، خو تاسو به څکه په و نه کړئ، تاسو به وږي، تږي او لڅ به د خپلو دښمنانو په خدمت مجبور کړل سئ او د ټولو شیانو به محتاج یاست، کوم چي الله (ج) ستاسو پر خلاف را استولي دي.

دښمن به ستاسو په غاړه کي د اوسپني طوقونه واچوي، تر څو تاسو ذلیل کړي، د مځکي د یوه سر څخه تر بل سر پوري به په ټولو قومونو کي تاسو ذلیل کړي.

نور بیا...

# ښځې ولې باید بې له محرمه بازار ته ولاړې نه سي؟

ډاکټره راضیه مفیضه

ښار ته چي کله ښځه ځي، نو تاسو د نارینه وو څخه یو کس ور څخه ځئ، همداسي یوازي یې مه پرېږدئ، ځکه په ښار کي هر ډول خلک وي، محیط ګډوډ وي او بل ښځي په ښار کي ډېري بدي ښکاري، چي په ښار کي یوازي رواني وي، ستاسو د کورونو خویندي به ډېري پاک لمنې وي، خو کله چي ښار ته یوازي ولاړې سي، یو خو هلته هر و مرو د یوې پېښې سره مخ کېږي او بل په کورونو کي له خبرو سره مخ کېږي.

# یو شعر څو خبري

لیکنه: حبیب الله قلم مل

پنځمه برخه

د شاعر لنډه پېژندنه:
شېر احمد "مشکور" د عبدالغني زوی او د عبدالباقي لمسی چې د اوسېدلو اصلي ځای يې د پنجوايي ولسوالي او اوس د کندهار ښار په شپږمه ناحيه کي اوسېږي. څلور ویشت کاله عمر لري.
زده کړي يې تر لسم صنف پوري کړي او اوس د خياطۍ په کار اخته دئ، په (۱۳۹۸ ل) يې د شعر شاپيرۍ پر زړه کښېناستلې ده، چاپي اثر نه لري.
"مشکور" د کندهاري آدب په غېږه کي نوی راټوکېدلی دئ، چې د زياتي خوشبويي تمه ځني کېږي، هغه د لوی کندهار ادبي بهير په مشاعرو او غونډو کي هم ګډون کوي، د شعر د ښه ويلو انداز يې هم ښه زده دئ او د وياندويي په چارو کي تکړه دئ.
هغه په خپل شعر کي ښه موضوعات رانغاړي او ډېرو ښو نقطو ته يې فکر کېږي، کله چې له خپل هيواد سره د ميني اظهار کوي، بيا له نورو شاعرانو په رقم له تنهايي څخه شکايت کوي او کله بيا د يار په راتګ دوندي خوشحاله کېږي چې د اوښکو په ډکو سترګو خاندي، کله بيا خپل باور ړوند او ځان اشتباه بولي:

چي ګل هيواد ته مي دعا وکړله
لس سره ګوتو مي رڼا وکړله

(حب الوطن من الايمان) ځيني علماء يې حديث بولي او ځيني يې مقوله بولي، په هر صورت د وطن او هيواد سره د لېونۍ او زياتي ميني پيغام په کښې دئ. ځيني عرفاني او تصوفي علماء د دې جملې څخه آخرت مرادوي چې زموږ اصلي وطن هغه دئ، نو له آخرت سره مينه کول، د ايمان د نخښو څخه ده، دلته دواړه مراد ځني اخلو، شاعر دلته له وطن سره د ميني و اظهار ته لوستونکي رابولي، دا که حقيقي وطن چې په آخرت کي جنت دئ او که مجازي وطن وي، چې هيواد دئ. شاعر وايي چې ما د هيواد د سمسور تيا دعا وکړله، نو ځکه مي ګوتي لکه د حضرت موسی (ع) لاس روښنايي وکړه، هدف دادی چي له هيواد سره د زياتي ميني پر اساس کاميابي او نېکمرغي راځي. دا که په ډېره کوچنۍ بهانه موږ خپل هيواد پرېږدو، نه به موږ جوړ سو او نه به هيواد. دلته شاعر خپل ستر مسئوليت چي د هيواد ميني ته رابلل و، په پوره مېړانه او صداقت سره ادا کړی دئ.

اوښکي مي پاکي کړې در ومي خندل
په پرهرونو مي سودا وکړله

مشکور بيا هم د هيواد په مينه کي غرق داسي وايي، کله چې مي هيواده، تا ته سوله، آرامي او سوکالي راوستله، دامي په پرهارونو سودا وکړه، نو ځکه اوس خاندم، که دا سودا مي نه وای کړې، نو اوس به هم د غمونو په درياب کي لاهو وای. موږ افغانان عجبه يو، همېشه مو ځان ته خندا د غمو په ګاللو او د هغوی په پاللو حاصله کړې ده، خو نور ملتونه داسي نه دي.

په سور کي نه ومه سګرېټ مي بل کړ
په ځان مي څه ستره بلا وکړله

په پورته بيت کي شاعر د يوې بلا څخه د خلاصون په خاطر بلې بلا ته پناه وروړې، دی خو وروسته پوهېږي چې دا دي څه مصيبت ځان ته جوړ کړ، دا بلا خو تر هغه بلې بلا زياته ده، چې مخکي په مبتلا وم، دا خو د معتادۍ جريان له ځانه سره لري، چې دا بيا بل مصيبت او خلکو ته ښيي، چې د داسي عمل څخه ځان ژغورل چې له ځانه سره اعتياد لري، ځان وساتي.

تر ناڅاپي راتګ دي وځرخېږم
زړګي مي بل رنګه درزا وکړله

کله-کله څوک د يو چا په راتګ دوني بل ډول سي، چې ناست مجلس ټول په پوه سي چې پر ده باندي د دې راغلي کس راتګ تر نورو زيات اثر وکړ او شايد ځينو دراز ملګرو ته د زړه د درزا هم ووايي، لکه يو بل شاعر چې وايي:

چي محفل ته راسي خلک ماته په کتوسي
داټول په ما پوهېږي چې پر تا باندي شيدايم

شاعر غواړي چې له يار سره د ميني د اظهار له پاره خلک پوه کړي او کوښښ کوي يو هيجاني حالت را منځته کړي.

زه د کوټې په کونج کي غلی ناست وم
تنهايي ښه مسته نڅا وکړله

شاعر په ډېرو ځايونو کي د حقيقت په ژبه خبري نه کوي، بلکي د مجاز ژبه يې ځان ته اختيار کړې وي، لکه: په پورته بيت کي خاموشي او نڅا دواړه متضاد لغاتونه دي چې خاموشي وي، هلته نڅا کله پاتېدلای سي او چې نڅا وي، هلته بيا خاموشي کله موجوده وي، دلته دار واښاد ګل پاچا الفت خبره را ياده سوله: هغه وايي چې تاسو له شاعره حقيقتونه مه غواړئ، هغه دغسي ځايونه يادوي نه دا چې شاعر بايد دروغ ووايي او خلک دوکه کړي، نو دلته هم دغه دوو متضادو لغاتونو د شعر په ښکلا او رنګينۍ کي زياتوب را وستلی دئ.

پر خپل ړانده باور پښېمانه ښکاري
"مشکور" در پيم ځل اشتباه وکړله

مشکور پر خپل يو کړي باور اعتراف کوي او وای چې دا باور مي ړوند و او ما اشتباه کړې ده، رښتيا هم کله-کله يو څوک د يو چا په وړاندي دا باور لري چې دا به زما غم خور وي، خو هغه د ده ته غم جوړ سي او يا ده د هغه د غم جوړېدو فکر کړی وي، هغه د ده غمخور جوړ سي يا کله- کله د يو چا له بل چا څخه ناحقه بد کېږي او د ځان له پاره يې سر دردي بولي، خو چي کله يې ور سره شناخت سي، هغه دونه په ژبه پوه او د ده په ګټه تمام سي، چي نوموړی پر هغه تېر فکر کولو پښېمان سي او يا برعکس له يو چا سره دي په اول وار ليدو دوني مينه پيدا سي چې ته وا ځان مي تر قربان کړی وای، چي کله دي ور سره رابطه زياته سي، بيا پر هغه اول وار ميني کولو پښېمان سې او د ياري تناب دونه ورسست کړي، چي په کال څه، حتي په ټول عمر يې بيا پوښتنه نه کوي، نو مشکور هم له دغسي تجربې سره مخامخ سوی دئ او دا يې د شعر په ژبه اعتراف کړی دئ.

---

**(۱) مخ پاته: د اقتصادي کمېسيون په نوبتي غونډه...**

له استازو سره په ګډه له هيواده د سرو زرو قاچاق د مخنيوي له پاره هر اړخيزه څېړنه ترسره او خپلي موندني له اقتصادي کمېسيون سره شريکي کړي.
د غونډې په آخر کي د بې کيفيته او غير قانوني درملو د واردولو او قاچاق د مخنيوي کړنلاره منظوره سوه.
د دغي کړنلاري د پلي کولو له پاره د خوړو او درملو ملي اداري په مشرۍ د ماليې، کورنيو چارو، ملي دفاع، صنعت او سوداګرۍ وزارتونو او استخباراتو لوی رياست د مرستيالانو په کچه يوې ګډي کمېټې ته دنده وسپارل سوه، چي دغه کړنلاره تر منظورۍ وروسته پلي کړي.

**(۱) مخ پاته: له انګرېزانو د خپلواکۍ د بيرته اخيستلو**

انقلاب راغلی، د افغانانو د سرونو په قربانۍ اسلامي نظام قائم سوی، د قدرت جزيرې ختمي سوې او افغانان د يو شرعي امير تر اطاعت لاندي ټول متحد سوي دي.
هغه له افغانانو وغوښتل، چې د خپلواکۍ او د اسلامي نظام قدر وکړي او ساتلو ته يې هر ډول قرباني ورکړي.
استاد حيات الله رفيقي د هيواد پر خپلواکۍ د افغانانو پر مېړانه او يووالي خبري وکړې او ويې ويل، نړۍوالو د تاريخ په اوږدو کي هڅه کړې ده، چې د افغانانو تر منځ جلا والی او تفرقه واچوي، چې کامياب سوي نه دي او افغانان به چا ته اجازه ور نه کړي، چې تر منځ يې تفرقه او جلاوالی راولي.
د ابراهيم النخعي د تخصصاتو استاد خپلواکي او آزادي د الله (ج) لوی نعمت ياد کړ او ويې ويل، د خپلواکۍ قدر يوازي خپلواک ملتونه پېژندلای سي، افغانان خپلواکي غوښتونکی ملت دئ او د همدې له پاره يې ډېري قربانۍ ورکړي دي.
د هغه په وينا، نور ملتونه دي هم له افغانانو سره د آزادۍ ولمانځي، ځکه چې په نورو ملتونو کي يې هم د آزادۍ احساس پيدا کړی او افغانانو نورو ملتونو ته دا پيغام ورکړ، چې د زبرځواکونو په وړاندي دربدل، ممکن او خپلواکي ورڅخه اخيستل کېدلای سي.
د دارالعلوم حقانيې استاد د اسلام له نظره د خپلواکۍ پر ارزښت هر اړخيزه وينا وکړه او ويې ويل، موږ بايد آزادي ولمانځو او د الله (ج) شکر ادا کړو.
استاد نور احمد قرآن مل بيا د افغانستان پر طبيعي موقعيت، پر افغانستان د يرغلګرو پر حملو او د افغانانو پر جهاد هر اړخيزه وينا وکړه.

**(۱) مخ پاته: د شل کلن جهاد د بريا د دوهمي کاليزي په**

عامو خلکو ګډون کړی وو.
د اطلاعات او فرهنګ رئيس شاعرانو، ترنم ويونکو او د مشاعرې ټولو مېلمنو او ګډونوالو ته ښه راغلاست ووايه او په خپله وينا کي يې د شعر او آدب پر ارزښت هر اړخيزه وينا وکړه او ويې ويل، لکه څرنګه چې د هيواد په خپلواکۍ اخيستلو او اسلامي نظام قائمولو کي شعر او آدب مهم نقش درلودی، د همدې خپلواکۍ او اسلامي نظام د بقا له پاره هم شعر او آدب ډېر مهم رول لري.
هغه له شاعرانو وغوښتل، چې د شعر او آدب له لاري پر ذهنيت جوړونه کار وکړي، داسي شعرونه جوړ کړي، چې د هيواد او اسلامي نظام په ګټه وي، ځوانان بايد په ديني او د يووالي په روحيه وروزل سي، چې دا چاره شاعران او د آدب خاوندان ښه کولای سي.
شاعرانو پر ترلاسه سوې خپلواکۍ، يووالي، د افغانانو پر مېړانه او د هيواد پر آبادۍ او نورو برخو حماسي او جهادي شعرونه او ترانې وويلې.

**(۱) مخ پاته: د کندهار پوهنتون د دوو پوهنځيو څخه**

د بل خبر له مخي د کندهار پوهنتون د ژورناليزم او عامه اړيکو پوهنځي څخه ۸۰ کسان فارغ سول.
د ژورناليزم پوهنځي رئيس پوهنيار سيد انور شاه عابد ويلي، د کندهار پوهنتون د ژورناليزم او عامه اړيکو پوهنځي په تېرو ۸ دورو کي ۶۷۵ ژورناليستان په مسلکي ډول روزلي دي.
د کندهار پوهنتون رئيس مولوي اکرم شاه عاصم د رسنيو پر ارزښت خبري وکړې او ويې ويل، رسنۍ په نننی عصر کي ډېر ارزښت لري، د ولس او حکومت ترمنځ د پله حيثيت لري، رسنۍ دي چې د ولس ستونزي تر مسئولينو رسوي او د مسئولينو لاسته راوړني او لارښووني تر ولسه رسوي.

**(۱) مخ پاته: د خپلواکۍ د ۱۰۴ مي کاليزي په مناسبت د...**

د منصور په وينا، د سيالۍ ليدلو ته د اطلاعات او فرهنګ رياست د ځوانانو چارو آمر حافظ حمد الله سعيد، د ۲۰۵ البدر قولي اردو وياند مولوي نذير احمد شکيب، ډېر نور مسئولين او عام خلک ورغلي وو، چې وروسته د سيالۍ ګټونکي لوبډلي ته د مسئولينو له لوري بېلابېلې ډالۍ ورکړل سوې.
د بل خبر له مخي په کندهار کي د ۴۸ لوبډلو تر منځ د فوټسال سيالۍ د "ملګري لوبډلي" په بريا پای ته ورسېدلې.
د سپورټ او بدني روزني رياست وياند نذير احمد نوري د يکشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ويلي، په وطن ورزشي جمنازيوم کي د کاکړ موبايل شرکت په نوم د ۴۸ لوبډلو تر منځ، د جمعې ورځي فوټسال سيالۍ د "ملګري لوبډلي" په لومړي مقام ګټلو سره پای ته ورسېدلې.
د نوري په وينا، د پای لوبې مراسمو ته يې د اطلاعات او فرهنګ رياست د ځوانانو چارو آمر، ډېر نور مسئولين او عام خلک ورغلي ول.
هغه زياته کړه، يادو سياليو شپږ مياشتي دوام وکړ او لوبې يې يوازي د جمعې په ورځ تر سره کېدلې.

---

شعري او آدب

## د طلوع ځلانده ډيوه

## غزل

**علي محمد احسان**

زما د زړه او زما د شور ملامتي ده
ستا د سترګو ستا د زور ملامتي د
***
ته شکمن يې مګر نه مي يې هېر کړی
ياره ستا ناحقه تور ملامتي ده
***
په وصال کي به دي ياره يادولای
د رقيب مخکي پېغور ملامتي ده
***
په دې جنګ کي د پرديو ګټي نغښتي
دا زما او زما د ورور ملامتي ده
***
ستا حضور ته يم راغلی زما خدايه!
پر سجده يمه نسکور ملامتي ده
***
که يې ګرځوم په سر کي خو بيا هم به
حق بې ور نه کړم په مور ملامتي ده
***
که نه ته خو مي "احسانه!" په کښي ياد کړې
په غزل کي ښايي نور ملامتي ده

## غزل

**شاکر يار**

ناشکره ياره ښه ياران هر چا ته نه رسېږي
داسي پاک دله انسانان هر چا ته نه رسېږي
***
څوک يې پرېږدي نه څوک يې ګرسره سم پېژني نه
محبت هم لکه ايمان هر چا ته نه رسېږي
***
ته يې لايق ته يې حق لرې او ارزې باندي
که نه لقب خو د جانان هر چا ته نه رسېږي
***
د ښايستو در تاثير لاندي که يو ځل راسي څوک
بيرته صحي سلامت ځان هر چا ته نه رسېږي
***
ګرځي يې ټوله په طلب نصيب د ټولو نه دي
دلته څو رنګه کاغذان هر چا ته نه رسېږي
***
غريبان نه پرېږدي "شاکر ياره!" په خپل منځ کي
مجلس د ښکلو ببخي ګران هر چا ته نه رسېږي

## د خپلواکۍ دوهمه کاليزه مو مبارک سه!

**مولوي نور الحق "مظهري"**

د امريکايي اشغال څخه د افغانستان د خپلواکۍ دوهمه کاليزه دي ټولو افغانانو ته مبارکه وي، الله (ج) دي دا خپلواکي د همدې اسلامي نظام په حاکميت کي ترابده وغځوي او الله (ج) دي موږ ته د همدې نظام د ساتني او سمبالښت توفيق راکړي.
د انقلابونو پاځون او ګټل سخت کار دئ، خو ساتل يې تر هغه لا سخت وي، ځکه نو موږ ټول بايد د شل کلني مبارزې دوې لويي لاس ته راوړني چې د هيواد استقلال او اسلامي حاکميت دي له لاسه ور نه کړو.
د استقلال او نظام په ساتنه کي حکومت او ملت دواړه ګډ مسئوليت لري، چې بايد سر ته يې ورسوي.
د نظام د بقا له پاره چي څومره ستړياوو ته اړتيا وي، دولت او ملت يې بايد په ګډه وګالي؛ په امنيتي، اقتصادي، تعليمي، فرهنګي او اصلاحي برخو کي ملت او دولت دواړه له يو او بل سره څنګ پر څنګ و درېږي.
دولت او ملت دواړه د دې مسئوليت لري چې په هيواد کي د هر ډول فساد، درغلۍ، خيانت او سرغړونو په وړاندي سره يو موټي سي او هيچا ته اجازه ور نه کړي چې د هيوادوالو آرامي وګواښي.

# Tolo E Afghan Journal

طلوع افغان مدیریت لـه ټاکلي ليکنيز معيار سره سم، د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! ستاسو څخه په ډېر احترام هيله کېږي، چي دا سپېڅلي پاڼي بې ځايه و نه غورځوئ!

مسئول مدير: بريالى "فيضي"
د تصحيح مسئول: بسم الله "غزنى"
کمپوز او ډيزاين: نصيراحمد "صابر"
د مديريت شمېره: ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزيع مديريت شمېره: ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پته: علامه حبيبي واټ –اطلاعات او فرهنګ رياست
د برېښناليک پته: Afghan.tolo@yahoo.com

Founded in 1921 | Issue: 35 | Established in 1300 Hijri


# افغان اعلانونه

## قرارداد کوي

د کندهار پوهنتون رياست غواړي، چي د خپلو ضرورتونو د پوره کولو په هدف د قرطاسيې قرارداد وکړي. که څوک د ذکر سوي قرارداد د کولو خيال ولري، خپل غوښتنليکونه دي د کندهار پوهنتون اړوند، د تدارکاتو آمريت ته د جواز او تذکرې سره يو ځای د ۱۴۰۲ ل کال د زمري مياشتي د درويشتمي نېټي څخه بيا د وږي مياشتي تر اتلسمي نېټې پوري وسپاري او خپل آفر دي ترلاسه کړي، شرطپاڼه کتلای سي، تضمين نغداً اخيستل کېږي، دآفر د خلاصولو نېټه د وږي مياشتي پر اتلسمه د شنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې، د مالي او اداري چارو معاونيت په دفتر کي جلسه جوړېږي، آفرونه د هيئت په حضور کي خلاصېږي، قرارداد په بند آفر تر سره کېږي. داوطلب دي خبر وي.



د کندهار پوهنتون رياست غواړي، چي د خپلو ضرورتونو د پوره کولو په هدف د دفتري او کمپيوټري تجهيزاتو قرارداد وکړي. که څوک د ذکر سوي قرارداد د کولو خيال ولري، خپل غوښتنليکونه دي د کندهار پوهنتون اړوند، د تدارکاتو آمريت ته د جواز او تذکرې سره يو ځای د ۱۴۰۲ ل کال د زمري مياشتي د پنځه ويشتمي نېټي څخه بيا د وږي مياشتي تر شلمي نېټې پوري وسپاري او خپل آفر دي ترلاسه کړي، شرطپاڼه کتلای سي، تضمين نغداً اخيستل کېږي، دآفر د خلاصولو نېټه د وږي مياشتي پر شلمه د دوشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې، د مالي او اداري چارو معاونيت په دفتر کي جلسه جوړېږي، آفرونه د هيئت په حضور کي خلاصېږي، قرارداد په بند آفر تر سره کېږي. داوطلب دي خبر وي.

## تعمير په کرايه غواړي

د کندهار ولايت د احصائيې او معلوماتو رياست، د مالي اداري عمومي مديريت د (۷۱۳-۳۲) ګڼه (۱۴۰۲/۴/۲۷) نېټې ليک په تعقيب ليکو!

د کندهار ولايت د احصائيې او معلوماتو رياست د (۲۰۹) ګڼه وړانديز او د احصائيې او معلوماتو ملي اداري د (۲۶۵۱) ګڼه حکم پر اساس، دا رياست د اليکترونيکي تذکرو د توزيع د ېيم مرکز د دفتري چارو د تر سره کولو له پاره غواړي، چي يو باب تعمير د ۱۴۰۲ مالي کال له پاره د کندهار ښار په شپږمه ناحيه کي په ذکر سوو شرايطو سره په کرايه ونيسي:

۱- د دوولسو اطاقونو د درلودونکی وي. ۲- د دوو لويو دهلېزونو درلودونکی وي.
۳- د دوولسو تشنابونو درلودونکی وي. ۴- د برق او اوبو د فعال سيستم درلودونکی وي.
۵- پراخه حويلي ولري. ۶- د عمومي سړک څنګ ته وي. ۷- د ښځينه مراجعينو له پاره جلا ځای او لاره ولري. ۸- اشپزخانه ولري. ۹- پراخه ساحه ولري.

ټول غوښتونکي کولای سي، چي د اعلان د نشر د نېټې څخه بيا د ۱۴۰۲ ل کال زمري مياشتي تر دېرشمي نېټې پوري خپل غوښتنليکونه د کندهار ولايت د احصائيې او معلوماتو رياست ته چي په څوارلسمه ناحيه، نظم خاص کي موقعيت لري، وسپاري.

## ډېروونکي غواړي

د کندهار ګمرک رياست اړوند:

يو باب کانتين چي د ګمرک رياست په داخل کي موقعيت لري. نظام الدين د سيد نور زوی يې د مياشتي په مبلغ ۴۶۰۰/۰-افغانۍ په کرايه غوښتونکی سوی دئ. هر هغه څوک چي د ياد کانتين د کرايې د زياتېدو خيال ولري، خپل غوښتنليکونه دي د ۱۴۰۲ ل کال د زمري مياشتي د دوه ويشتمي نېټي څخه بيا د وږي مياشتي تر څلورمي نېټې د شنبې ورځي (اوو ورځو) پوري دي د مستوفيت رياست د املاکو لوی مديريت ته وسپاري، شرطپاڼه کتلای سي تضمين نغداً او ياده د مزايدې داوطلبي د وږي مياشتي پر پنځمه نېټه، د يکشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې، د تعين سوي هيئت په حضور کي د املاکو په عمومي مديريت کي تر سره کېږي.



د کندهار ګمرک رياست اړوند:

يو باب د فوټوکاپۍ غرفه چي د ګمرک رياست په داخل کي موقعيت لري. بخت محمد د امير محمد زوی يې د مياشتي په مبلغ ۴۰۰۰/۰-افغانۍ په کرايه غوښتونکی سوی دئ. هر هغه څوک چي د يادي د فوټوکاپۍ غرفي د کرايې د زياتېدو خيال ولري، خپل غوښتنليکونه دي د ۱۴۰۲ ل کال د زمري مياشتي د پنځه ويشتمي نېټي څخه بيا د وږي مياشتي تر اولي نېټې د چهارشنبې تر (اوو ورځو) پوري دي د مستوفيت رياست د املاکو لوی مديريت ته وسپاري، شرطپاڼه کتلای سي تضمين نغداً او ياده د مزايدې داوطلبي د وږي مياشتي پر دوهمه نېټه، د پنجشنبې په ورځ، د سهار پر لس بجې، د تعين سوي هيئت په حضور کي د املاکو په عمومي مديريت کي تر سره کېږي.

## د اعتبار وړ نه دئ

ريحان چهار هزار لميټيډ د (۲۸۶۳-۲۷) شمېرې جواز درلودونکی چي رئيس يې عصمت الله "قريشي" د حاجي فاضل محمد زوی او مرستيال يې نقيب الله د حاجي فاضل محمد زوی دئ، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته د اعتبار وړ نه دئ.

## دورکي اعلان

يوه قطعه برېښنايي تذکره چي د بخت بي بي "محمدي"، د محمد ايوب د لور او د محمد آمين لمسۍ په نامه ده، ورکه سوې. هر چا که پيدا کړې وي، د لويي ويالې د ډېرو پله سره حاجي ملاصاحب دوکان ته دې ور وړي او يا دي د ټيليفون په دې شمېره دې تماس ونيسي: 0704597562

## په ليلام يې ور کوي

د کندهار مستوفيت رياست په پلان کي لري، چي د لاندي (۳) درو رياستونو اړوند داغمه اجناس او عراده جات د آزادي داوطلبۍ له لاري ليلام کړي.

| شماره | د اداري نوم | ورځ | نېټه | اجناس | عراده جات | تضمين (۱۵٪) |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | د سرحدونو او قبائلو چارو رياست | يکشنبه | ۱۸/ صفر/ ۱۴۴۵ | (۴۷) قلمه | (۰) نسته | (۳۰۳۲) افغانۍ |
| ۲ | د کندهار پوهنتون رياست | دوشنبه | ۱۹/ صفر/ ۱۴۴۵ | (۲۹۳) قلمه | (۳) عرادې | (۱۱۷۴۲۷) افغانۍ |
| ۳ | دافغاني سرې مياشتي ټولنې د جنوب غرب زون ساحوي رياست | سه شنبه | ۲۰/ صفر/ ۱۴۴۵ | (۴۳) ټنه اوسپنه | (۸) عرادې | (۲۳۴۷۵۰) افغانۍ |

پر شرايطو برابر داوطلبان کولای سي، چي په پورته ليلامونو کي د ګډون کولو له پاره په همغه ورځ او نېټه ياد رياست ځان حاضر کړي.

په ليلام کي د ګډون کولو شرطونه:

۱- د تابعيت تذکره.

۲- د مجموعه قيمت پنځلس فيصده (۱۵٪) تضمين نغداً.

آدرسونه:

۱- يوولسمه ناحيه، عينو مېنه، سيټا چوک ته نژدې، د محکمې ختيځ لور ته د سرحدونو، قومونو او قبايلو چارو رياست.

داړيکي شمېرې: 0700558915

۲- نهمه ناحيه، لويه وياله د لويي عيدګاه لوېديځ لور ته د کندهار پوهنتون رياست.

داړيکي شمېرې: 0707062148 – 0703791047

۳- څلورمه ناحيه کندهار ولايت مقام ته نژدې، داطفائيې مرکز ختيځ لور ته، دافغاني سرې مياشتي ټولنې د جنوب غرب زون ساحوي رياست.

داړيکي شمېرې: 0700305780

## اعتبار نه لري

محمد يونس د عبدالرحمن زوی د انفرادي جواز مالک چي د جواز شمېره يې (۶۹۲۰-۲۷) ده، ورک سوی، د اعلان تر نشر وروسته اعتبار نه لري.

## د کارمونډني اعلان

کندهار پوهنتون د کار اهل کار ته د سپارلو په موخه لاندي خالي (۳، ۴، ۵، ۷، ۸) بستونه د آزادي سيالۍ له پاره اعلان ته سپاري.

| شماره | اداره | د بست عنوان | بست | تعداد | داستخدام شرطونه: دزده کړي شرطونه | داستخدام شرطونه: کاري تجربه |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص جراحی | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۲ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص چشم | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۳ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص جلدی | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۴ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص نسائی و ولادی | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۵ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص ګوش و ګلو | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۶ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص داخله اطفال | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۷ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص جراحی اطفال | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۸ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص عقلی و عصبی | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۹ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص انستيزی لوګ | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۱۰ | سرطبابت شفاخانه کادری | متخصص يورولوژی | ۳ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | دوه کاله |
| ۱۱ | سرطبابت شفاخانه کادری | ډاکټر چشم | ۴ | ۱ | لوړې زده کړې او تخصص | يو کال |
| ۱۲ | سرطبابت شفاخانه کادری | ډاکټر ګوش و ګلو | ۴ | ۱ | په طب کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۳ | سرطبابت شفاخانه کادری | ډاکټر انستيزی | ۴ | ۱ | په طب کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۴ | معاونيت تحقيقات و مجله | کارشناس علوم اجتماعی | ۴ | ۱ | لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۵ | معاونيت تحقيقات و مجله | مدير عمومی مجله علمی | ۴ | ۱ | لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۶ | معاونيت امور محصلان | روانشناس کلينيکی ذکور | ۴ | ۱ | په روانشناسي کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۷ | پوهنځی ژورناليزم | عضو تخنيکی راديو | ۴ | ۱ | په ژورناليزم کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۸ | پوهنځی ژورناليزم | عضو مسلکی مطبعه | ۴ | ۱ | په ژورناليزم کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۱۹ | معاونيت تحقيقات و مجله | مدير اجرائيه | ۵ | ۱ | په عامه اداره کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۲۰ | معاونيت تحقيقات و مجله | مدير ممتهم او تصحيح متون | ۵ | ۱ | په ادبياتو کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۲۱ | معاونيت امور محصلان | ترينر آموزش مهارتهای شغلی | ۵ | ۱ | په کمپيوټر ساينس کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۲۲ | سرطبابت شفاخانه کادری | تکنيشن راديولوژی | ۵ | ۱ | په اړوند څانګه فوق بکلوريا زده کړې | يو کال |
| ۲۳ | سرطبابت شفاخانه کادری | تکنيشن اکسری | ۵ | ۱ | په اړوند څانګه فوق بکلوريا زده کړې | يو کال |
| ۲۴ | معاونيت مالی و اداری | تکنيشن کمپيوټر ليب | ۵ | ۱ | په کمپيوټر ساينس کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۲۵ | معاونيت مالی و اداری | لابرانت فارمسی | ۵ | ۱ | په اړوند څانګه فوق بکلوريا زده کړې | يو کال |
| ۲۶ | معاونيت مالی و اداری | لابرانت انرژی | ۵ | ۱ | په اړوند څانګه فوق بکلوريا زده کړې | يو کال |
| ۲۷ | معاونيت مالی و اداری | لابرانت انرژی | ۵ | ۱ | په اړوند څانګه فوق بکلوريا زده کړې | يو کال |
| ۲۸ | پوهنځی ژورناليزم | تکنيشن کمپيوټر ليب | ۵ | ۱ | په کمپيوټر ساينس کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۲۹ | پوهنځي کمپيوټر ساينس | تکنيشن کمپيوټر ليب | ۵ | ۱ | په کمپيوټر ساينس کي لوړې زده کړې | يو کال |
| ۳۰ | معاونيت مالی و اداری | صحاف | ۷ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۱ | اداره عامه | خانه سامان | ۷ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۲ | معاونيت علمی | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۳ | معاونيت تحقيقات و مجله | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۴ | معاونيت تحقيقات و مجله | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۵ | معاونيت مالی و اداری | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۶ | معاونيت مالی و اداری | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۷ | پوهنځی تعليم و تربيه | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۸ | پوهنځي ژورناليزم | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |
| ۳۹ | پوهنځی ادبيات | کارکن خدماتی | ۸ | ۱ | په اړوند څانګه مهارت ولري | |

پر شرايطو برابر کانديدان کولای سي، چي د ۱۴۰۲ ل کال د زمري مياشتي د ۲۸ نېټې څخه بيا د روان کال د وږي مياشتي تر ۱۳ نېټې پوري فورمې د کندهار ولايت د بشري سرچينو د رياست او کندهار پوهنتون د بشري سرچينو د آمريت څخه ترلاسه کړي.